بسم الله الرحمن الرحیم

سریزه:

ارمان مې پوره شو!

د مطالعې ډېر شوقي وم، له لومړي واده وړاندې یعنې د تحصیل په دوران کې به په بازار کې ډېر کم داسې کتاب پاتې و چې ما به نه و لوستی خو د نسیم حجازي له تاریخي ناولونو پرته کې مې اوس ذهن ته نه راځي چې د یو چا هرې لیکنې ته مې اوښکې تویې کړې وي.

عزام حفظه الله تعالی چې د خراسان د تمکین د عجیب ژوند کوم انځور کاږي نو که مبالغه یې نه بولئ نو هر پراګراف ته یې اوښکې تویوم.

کله چې په عزام له عکاشه او مصعب مولانا تقبلهما الله سره یو ځای ډرون برید وکړ نو دا یو ارمان به ډېر راته چې کاشکې مو په عزام صیب

نور هیڅ کار نه وای کړی، فقط هنري لیکنې راته کولې، ځکه چې په عزام صاحب کې الله تعالی د نورو هنرونو تر څنګ د هنري لیکنو داسې استعداد اچولی چې دطاغوت ډېر پروفیسوران او دوکتوران دې ترې قربان شي.

کله چې بیا ځلي الله تعالی په مونږ د عزام صاحب ژوند راپیرزو کړ نو یوه ورځ مې ورسره خپل دا ارمان شریک کړ. ده راته وویل چې په لنډو کیسو کې یې هم کار کړی اود پیچومي لاروي دویم ټوک هم تقریبا پوره شوی دی.

الله د عزام صاحب په بیا ژوند زما د هغه، د هنري لیکنو ارمان پوره کړ.

د عزام صاحب هره لیکنه د خراسان د تمکین د ژوند داسې رښتینی انځور دی چې دلته د هر مجاهد په ذهن کې موجود دی خو دلته ژوند دومره لوړ او حیرانونکی دی چې هر چا ته یې انځورګري اسانه نه ده.

په خلافت کې د هجرت ژوند ټول همدومره له خوږو غمونو ډک دی چې عزام صاحب يې ځینې صحنې انځور کړې دي.

د عزام صاحب لنډې کیسې د طاغوتي لیکوالو په څېر خیالي مه بولئ، بلکې دا ټولې د رښتیني ژوند ،رښتینی انځور دی. یوازې په ځینو ځایونو کې نومونه تغییر لري، نور هرڅه رښتیني او واقع شوي دي چې ددې ځای د ناآشنا ژوند له کبله کېدای شي چې ډېر خلک پرې د خیالي کیسو ګومان وکړي.

د خلافت ژوند، د لاندې ژوند په پرتله خیالي دی، د خواهش پرستۍ په دې زمانه کې که مونږ لاندې خلکو ته ووایو چې دلته نېکمرغه هغه دی چې جوار پیدا کړي، یا يې جوش کړي او یا يې اوره کړي نو خلک به په مونږ نور ګومانونه وکړي. د عزام صاحب د کیسې هر پراګراف به لاندې خلکو ته همدومره عجیب وي. په دې کې داسې څه نشته چې مونږ پرې فقط د خلکو خواخوږي راجلب کړو او نه مونږ د مخلوق،

نظر راړولو ته ضرورت لرو. مونږ ته زمونږ رب کافي دي او هغه تر ټولو ښه ولي او ښه دوست دی.عزام صاحب فقط د خپل ژوند څو صحنې د خاطرو په حیث ثبت کړي، ځکه چې عـزام د خراسـان د اعلامیـانو زړه دی او زړه په لړه ضربه هم زیانمن کېږی چې عـزام خپـل دغـه دردونـه تصویر کړي دي.

الله دې ورته اوږود ژوند ورکړي چې د لنـډو کیسـو داسـې څـو ټـولګې ولیکي او د خراسان د فقیر ژوند انځورنه په تاریخ کې ثبت کړي.

آمین

ابوصهیب فردوس بهار

29 /ذوالقعده/1440

31/جولای/2019

## واده که جنازه:

ډېر وخت کیده چې نه مې و لیدلې، خبریدم چې ژوندې ده او په یوه ډېره لرې منطقه کې په کتیبه کې دې، د تقوا، حیاء او پاکۍ پرې ختمه وه، د هجرت په لمړنیو وختونو کې یې راسره ملګرتیا شوه، که به هر چرته و نو په میاشت دوه کې به یې ځان رارساوه.

دا چې په کوم طرف کې و هلته سخت بمبار شوې و، نن مې الله شاهد ده ډېر په زړه راووریده، دلته د هجرت په کلي کې ټولو مشرانو او کشرانو پیژانده، یو ورځ یې راځخه حذیفه کاکا پوښتنه وکړه چې نعیم نه ښکاري ژوندې خو دې؟

ما ورته وویل: هو ژوندې ده خو لرې لرې دې.

زموږ ماشومانو هم پیژانده یو وخت ډېر وخت راسره دیره و.

زرقاوي په خوشالۍ په کور راننوت: نعیم کاکا راغې.

په منډه حجرې ته ورووتم، هغه پخواني نعیم نه و، اوس یې په مخ کې د کابل رنګونه تت شوي وو، په خړو ځنو یې ګردونه پراته و، راوچت شو،

غیږ کې مې ونیوه:

د الله بنده مړې ژوندې دې ورک دې، ټول کلې درپسې خفه شوی!

په خوږه موسکا یې ځواب راکړ: د کتیبې ملګري مو اکثره شهیدان شول، ملګري کم و ځکه نو نه راوزګاریدم.

تکیه مې ورته سموله زما لاس یې ونیوه، خپله یې لاس ورتیر کړ، چې کیناست نو پاڅیدم کمپله مې راواخسته په پښو مې چې ورهواروله نو بیرته بیا ودرید کمپله یې زما له لاسه واخیسته.

ماویل: د الله بنده میلمه یې ته لږ په ارام کښېنه!

خوږه خندا یې وکړه.

بخارې پسې مې لړکي ورسم کړل، چې کتل مې بیا مې سر ته نیغ ولاړ و، چې زه یې بلوم.

دا ځل ورته لږ په غصه شوم: په ارام کینه مړه!

ستړې یې، چې دمه دې جوړه شوه بیا یې کوه.

بهر د پیالو کړنګار شو، زرقاوي چاې راوړ، د زرقاوي له لاسه یې د چایو

لوښي واخستل، ورغاړېوت، زرقاوي يي تر ځنګ کښيناوه: ډېر مې ياد شوې و، چا ويل زرقاوي شهيد شوې دې.

زرقاوي هم ورته ډېر خوشاله و،

راغلم تر ځنګ يي کيناستم، چې پيالو ته مې لاس کړ نو قسم يي وکړ که ډکې يي کړم ما ورته وويل: ښه پرېږده، زرقاوي به يي ډکې کړي.

په خندا مې ورغبرګه کړه دومره خدمت مه کوه ګوره شهيد کيږې،

سترګې يي په زمکه ورخښې کړې او زياته يې کړه: کومه دې شهادت پسې خو مې سترګې وتلي هر جنګ ته د شهادت په نيت تللې يم خو الله يي نه راکوي.

مال: ما خوفکر کاوه چې يا شهيد شوې يي چې نه راځې او يا به دې واده کړې وي؟

له ډېرې حيا يي يو ځل بيا له ما سترګې واړولې.

په خاموشه غږ يي وويل: چې همدې دوه مشورو ته راغلې يم!

مال: ځنګه؟

په ډېر ادب يي پسې خبره وغځوله: يا به استشهادي کتيبه کې نوم ليکنه کوم او يا به راته واده کوې.

په اوربه مې لاس ورکيښود په ټوکه مې ورته وويل: مطلب که واده درته ونکړو نو استشهادي کوې که څنګه؟

خوربه خندا يي وکړه: نه مشره ته پوهه نه شوې؟

امير صاحب ته مې هم وويل چې استشهادي ته ځم خو هغه وايي دا کتيبه به څوک سنبالوي؟ اوس تا پسې راغلې يم چې که ته ورته ووايي او اجازه راکړي.

ورته مې کړه: هو خبر شوې يم اوس يي د کتيبې مسئوليت هم درسپارلې.

امر صاحب دې درته ښه ويلي د استشهادي عملياتو ملګري ډېر دي، خدمت وکړه، کار وکړه، چې کله دا کارونه منظم شول نو بيا خو استشهادي عمليات چا ورې نه دي، که د الله رضا وه کور به درته اباد کړو.

سر يي ښکته اچولې و، تر ډيره په فکر کې ډوب و، پياله مې ورنيږدې کړه.

نعيم د کابل و، پلار يي حکومت کې په غټ پوست کار کاوه، نوموړي په څلورم ټولګي کې حقوقو پوهنځې پريښې و او راغلې و، پلار ته يي يو ځل زنګ وهلې و، ورته يي ويل: که وظيفه پرينږدې نو وژنم دې.

چاې مو چې وڅښلې اميد ورته تودې اوبه او پاک کالي راوړل، نعيم جامې بدلې کړې د ماذيګر د لمانځه وخت شو، دواړه جمعې ته لاړو ټولو کليوالو ورسره تود روغبړ وکړ، چې له جماعته راووتلو نو حذيفه کاکا ورسره بيل شو، ښه شيبه سره پسيدل، حذيفه کاکا ترې همغې لاندې لارې ته ښکته شو او نعيم په خندا زما څنګ ته راروان شو.

ورته مې کړه: والکه حذيفه کاکا دربانديې څه زيرې وکړ چې خوله دې نه راټوليږي؟

په ډيره سخته يي وويل: مشره په خوله مې نه راځي، زه خو ډير حيران يم، بيګا مې الله ته سوال کړې و، چې اي ربه يا راته د استشهادي

عملیاتو توفیق راکړه او که ژوند کې مې خیر وي نو بیا مې کور اباد کړه، په خندا یي پسې خبره وغځوله: د دعا دویمه برخه مې لکه چې قبوله شوه!

مال: هغه ښنګه لیونیه؟

په خوربه خندا یي خبره راغبرګه کړه: حذیفه کاکا راته اوس وویل: لور مې پیغله شوې او که واده ته دې اراده وي نو غواړم چې تاته یي درکړم، مشوره هم وکړه او که خپله راځې او یا یي څوک لیدلو ته رالیږې، نوره نو ستا خوښه.

غیرې مې ترې چاپیره کړه: یاره داسې دعاګانو کې مورې هم یاده وه کنه، ستا خو څراغ اوبو کې بلیږي.

ښه اوس راته دا ووایه چې ښنګه تابیا دې راځي که نه؟

په یوه شوخه موسکا یي جواب راکړ: ته یو ځل د زرقاوي دوې مور ورواستوه چې ښنګه ده؟

جواب مې ورکړ: خپله یي نه ګورې؟

شریعت خو ددي لیدو اجازه ورکړې.
ویل یي نه بس چې حذیفه کاکا دومره اخلاص وکړ همدا بس ده.
کور ته ننوتم، د زرقاوي مور ته مې وویل تا د حذیفه کاکا لور کتلې
ښنګه انجلۍ ده؟
ښه کار ته ناسته وه راپورته شوه: هغه خو ډیره ایمانداره انجلۍ ده، سبق
یي هم ویلې او د ښایست ثاني یي هم نه شته، ښنګه شرافت ته خو به
یي نه غواړې؟
نه یو بل ورور مې دې هغه ته یي غواړم، ته سبا ورشه او کور والا ته یي
ووایه چې د نعیم خوښه راغلې او نوره نو تاسې ته خبره پاتې ده.
په سبا مو قاضي صاحب خبر کړ، هغه وویل: حذیفه کاکا واقعي چې په
سنتو عمل وکړ، دې سره یي نعیم ته مخ ورواړاوه: اوس به داسې وکړو
چې ته به انجلۍ وګورې او انجلۍ به تا وګوري دې کې خیر ده.
نعیم له ډیرې حیاء پورته شوغوښتل یي چې بهر ووځي، له لمنې مې
ونیوه: د الله بنده قاضي صاحب ښه وایي، بیا به سبا وایې چې حذیفه

کاکا راباندې هسې خپله لور راتاوان کړه.

په غلې غږ یې وویل: یاره بس دا کار نه شم کولاې بس له ما به شکایت وانه ورئ خو دې کتو ته مې مه مجبوروئ.

اخر هم قاضي صاحب د انجلۍ او هلک تر منځ لیدو کتو ترتیب برابر کړ او کتل وشول.

نعیم چې راغې له اټکله زیات خوشاله و، ویل یې: مشره زموږ رب ډېر مهربانه او غیرتي ده الحمد الله.

حذیفه کاکا، قاضي صاحب او نور څو کسه ملګري سره راټول شول چې چاې مو وڅښلې ټولو د حذیفه کاکا دا جرأت وستایه او قاضي ورته وویل: کاکا وایه کنه نعیم خو مسافر هلک دې هیڅ هم نه لري مهر به پرې څومره ږدئ؟

دې سره کاکا اوچت شو ته صبر زه مې له لور نه پوختنه وکړم.

.

کاکا کور ته ننوت، ملګرو نعیم رایسار کړ او په عذابوه یې، یوه ورته

وویل: ته وګوره څو روپۍ درسره دي د الله بنده واده کوې څه ټوکې خو نه دي؟
نعیم جیب ته لاس کړ، شیبه پس یې یو زوړ پنځه سویز او دوه نچه شوې سلګونان راوویستل، په خندا یې لاس کې ونیول: ټوله هستي نیستي مې دا اوه سوه روپۍ دي.
حذیفه کاکا راننوت، سلام یې وکړ، قاضي صاحب ته یې ورمخ کړ:
قاضي صاحب لور مې وایي بس په مهر کې دې راته د جهاد او قتال له باب څخه ځلوېښت احادیث یاد کړې بس دا هر څه دي.
قاضي صاحب اوچت شو، له انجلۍ یې هم د هغې د رضایت تائید اخستې و، کوژده وشوه، قاضي صاحب په کوژده کې نکاح هم وتړله او نعیم ته یې مخ راوګرځاوه بس چې ته هر وخت وغواړې واده کولې شې، حذیفه کاکا نور کوم شرطونه نه لري.
مجلس رنګ شو.
چې کور ته لاړو، نو نعیم ویل ما سره خو نه پیسې شته او نه د واده په

کیسو پوهیږم دا به څنګه شي؟

ما ورته وویل: بس نور خو پیسو ته ضرورت پاتې نه شو، فقط کور والا ته دې دوه درې جوړه کالي برابرول غواړي د کور سامان او لوښي هم چې برابر شي او ستا لپاره خو نوې جامې تیارې کور کې شته که چرته د شفق خوښه وه، همدا مهال شفق راننوت هغه هم خبر شوې و، له خپلو یې وویل ماته یو ملګري نوې څپلۍ، جامې او واسکټ رالیږلي لا مې استعمال کړي نه دي زما او ستا بادې یو شان ده بس په تا به جوړې شي، دې سره شفق اوچت شو لاړ له کوره یې پیزار او کالي راوړل.

شفق بیرته ووت

چې ماښام راغې نو په خندا یې وویل: هلکه د ورندارې لپاره مې هم نوې کالي پیدا کړل.

ماویل: له کومه دې کړل والکه؟

په خندا یې راغبرګه کړه، حیدر خو میاشت وشوه چې واده یې کړې او له کوزه ورته ورونو او مور یې د ښځې لپاره ډیر سامان رالیږلې و، هغې

پسې ورغلم، د هغې ښځې درې جوړه نوې کالي چې لا یې استعمال کړي نه دي دوه جوړه پیزار او نور هم سرخي سپیدې او د سینګار شیان دې خلته کې راواچول، پوره مې ونه کتل بوجې یې راډکه کړه رامې وړل!
د نعیم خوله له خندا نه، نه راټولیده.
شفق ته مې وویل ښه بس اوس نو ورته د کور او لوښو غم هم وخوره.
ویل یې: بې غمه شه ماښام جماعت کې ملګرو ته وایم.
چې کتل مې په سبا د کلي څو زلمو موږ سره خوا کې کور چې موږ به حجرې لپاره استعمالاوه د حجرې سامان یې ترې بل ځاې ته انتقالوه، ټول چاپیره و، نعیم ته یې همدغه کور کې کوټه جوړه کړه، چا درۍ راوړه چا دوشکونه او چا لوښي راځغلول.
عجیبه کیفیت و، د کلي هرې کورنۍ داسې احساس کاوه چې ګوندې د واده زلمې ددوې د کور دې، ښځې هم خوشاله وې او ماشومان هم!
په یوه ورځ کې کور راجوړ او کالي پوره شول.
د شپې یې راته وویل: وروره زه به سبا د امیر صاحب خواته لاړ شم چې

د ولیمې لپاره یو څو روپۍ هم ترې راواخلم او د کتیبې ملګري به هم خبر کړم له هغه ځایه به ځان راوزګار کړم، چې راغلم نو بیا به ان شاء الله تاسې د واده نیټه وټاکئ.

په خندا مې ورته وویل: هلکه په دې دوه درې ورځو کې ډېر سپین سترګې نه شوې؟ په دې اړه خو مخکې ستا خوله په امبور هم نه خلاصیده!

لاسونه یې رانه تاو کړل: بس ومې بخښه امیر صاحب.

ما ورته وویل: ښه ده چې د ولیمې ترتیب الله برابر کړي ځکه د کلي لوې او واړه ټول خوشاله دي نو چې واده راجوړ کړو ښه ده، سمه ده سبا لاړ شه خو ایسار نه شې.

زه چې سهار وختي راووتم نو نعیم نه و، تللې و، نعیم چې په کوم طرف تللې و، د هغه د تللو په سبا خبر شولو چې هلته نو د امریکایانو او کماندویانو غټه قوه راغلې او په بله ورځ مو واورېدل چې نعیم په مخامخ نښته کې شهید شوی، تقبله الله.

**ورېي يتيمان:**

د کنډو سر ته چې راورسيدو نو ملګري ته مې وويل: وروره بس دا لاندې کلې دې نور نو راورسيدو په خير!

زويه سترې مه شئ!

د زړې ادې په دې مينه ناک غږ مو سترګې د هغې په لور کږې شوې.

ورته ومو ويل: جنت دې په نصيب شه ادې، څنګه په دې قضا ماذيګر کنډو کې ناسته يې؟

ادې د امسا په زور راولاړه شوه: زويه سهار ملا اذان مې دوه لمسي او زمورږ د ګاوندی کونډې دوه زامن سودا پسې تللي، داده ماښام شو خو درک يې راونه لګيده، کور کې ګرد وړه نه شته، يتيمان راته ژاړي، نور څه خو هسې هم نه راوړل کيږي مال چې دا اوړه يې رارسولې وې نو هم يو څه سوده به مو پرې شوې وه.

ملګري مې ماته په پوښتونکي نظر راوکتل او زما ذهن ته هم د نن

ماسپښین پرلپسې د ډرون څو ګذارونه ودریدل چې له لاندې ساحو
څخه یې دوړې پورته کړې.
مورې لا ادې ته د تسلي لپاره الفاظ لټول چې یو دولس کلن ماشوم د غره
په اړخي کې په راختلي نري سړک مخ بره د راختلو په حال کې و،
سترګې مو په ماشوم کې وګنډلې، ادې هم زمورې له څاره پوهه شوه چې
ګوندې څوک مو ولیدل، نو په خوښۍ یې وپوښتل: لکه چې راغلل؟
چې ماشوم په ماتو قدمونو رانیږدې شو، ټول په وینو سور و، خړ سر کې
یې پنډ خاوره پرته وه، جامې یې ځای ځای سورۍ وې.
مورې څو قدمه ورمخکې شولو:
والکه دا ولې؟ خیر خو به وي؟
ماشوم د ځواب راکولو په ځای زما په غیږه کې رارڼګ شو.
ادې راورسیده: دا څوک دې؟
زمورې د ځواب انتظار یې ونکړ: وی ړنده دې شم دا خو شمس الله دې.
واه زویه!

زما لمسي څه شول؟

ماشوم ادې ته د ځواب په ځای د ژګیروي په ملتیا اوبه وغوښتې.

ملګرې مې په منډه کلي ته ښکته شو، شیبه پس لوټه په لاس سره د نورو کلیوالو کنډو ته راوخوت.

ماشوم چې اوبه وڅښلې نو په خبرو راغې:

سودا مو واخیسته چې راتلو نو هغه رانه لاره کې اربکیانو واخیسته، سخت یې ووهلو، همداسې تش یې راوشړلو، فرید او زبیر په پټه په بله لار لړ اوړه راوویستل هغه مو په یوه خره راواچول چې څنګه دغه لاندې ځای ته راورسیدو نو ډرونونه راپیدا شول، له رارسیدو سره سم یې په موږ څلور واړو ګوزار وکړ، په اول ګوزار کې مې ولیده چې فرید او خر یې ولګید او د ورو په سپین ګرد کې ترپکې وهلې، زبیر او زما ورور قاسم زخمیان و هغوې منډې کړې، زه د جګیدو نه وم، چې بل ګذار یې وکړ نو هغه یې هم وویشتل، زه هم وارخطا شوم، منډه مې واخیسته، یوه سره لمبه شوه چې وغورځیدم، ډیر وخت پس چې رابیداره شوم نو روغ

وم، په ملا او پښو مې معمولي چرې لګېدلې وې، ډرونونه تللې و، همداسې په دمه دمه مې ځان راورساوه!

دې سره ما شوم په ژړا شو: زما به د خپل ورور او ملګرو چغې او ځګیروي هیر نه شي.

ښه بیګا ته به زما واره ورونه څه خوري؟

ژاولې مې ورته اخستې وې هغه هم اربکیانو راته له جیب نه راوویستې.

دې سره یې غږ په سلګو کې ورک شو.

**څښور غازي:**

د شنه غره په اړخ کې په پوښلې، نرۍ غرنۍ لاره روان و، له لاندې د غرني خوړ شور او له بره د څو ډوله امریکایي جنګي طیارو غرهار سره یو بل کې ورکیده، ملګري مې لاندې خوړ او بیا ډیر لرې یو کنډو ته ګوته ونیوله او په سترې غږ یې وویل:

یوه لاره همدا ده، دا چې ددې غره په اړخي کې هغه کنډو ته په ترج ورختلې، او بله لاره لاندې خوړ ته ورښکته شوې او له خوړ پورته کنډو ته ورختلې، لاره پیچلې ده خو لنډه ده او دا لمړۍ لاره آسانه ده خو لېرې ده، اوس ستا خوښه په کومه ځو؟

ځواب مې ورکړ: راځه!!

خوړ ته به کښته شو، هم به ددې غرني خوړ سندرې له نیږدې اورو هم به یې یخې او شنې ابو وڅښو، د لمانځه وخت دې اودسونه به هم وکړو او وخت ناوخته دې ځان به په وخت خپل منزل ته ورسوو.

ملګرې مې شاته راوکتل، خوله یې له خندا ډکه وه، ویې ویل: سمه ده

خو د خور سندرې نه ترانې به يې واورو.

ماهم په خندا ورغبرګه کړه: ښه صاحب.

نوره لار مخ زوروې وه له ملګرې مخکې شوم ورته ومې ويل: که دومره تکړه يې نو راپسې راورسيږه!

له شانه يې راغږ کړ: منډې مه وهه، د هغه پورې کندو په پيچومې کې به دې پته ولګيږي.

همداسې په منډه کې مې ځواب ورکړ: نورې خبرې مه کوه د کولبې نه يم خو د مالې بوټه بلا يم.

د خندا شور يې د قدمونو په ترپا کې ورک شو، نوره لاره مو په نيمه منډه ووهله، د خور په اوبو مو ښه شندې وکړې.

د ماسپښين جمعه مو د خور په غاړه د شنو وښو په غيږ کې نيولې د يوې هوارې تيږې په سر وکړه.

د لوږې احساس مې وکړ: قاري صاحب ته وګوره د خوراک څه درسره پاتې نه دي؟

په غصه يي راغبرګه کړه: نه کومه دې سخي ارسلا خانه!

هغه لږه وچه ډوډۍ او کورت پاتې و، هغه خو هم تا په هغه شپنو ماشومانو وويشل، اوس د لوږې نه شپيلي وهه.

په خواره خوله مې ورته وويل: شپيلي نه، وايه چې اوس د لوږې نه الله الله وايه.

مه غصه کيږه الله مهربانه دې.

ملګرې مې له خندا شين واوښت: ډېر ژر دې بدل واخيست.

څه به مو سر خوږوم، له کندوه ختلې پورته پيچومې مو په څو دمو کې وواهه، خوله خوله د کندو سر ته پورته شولو، همملته د يوې څيرۍ لاندې خلاصه سينه د سپين غر يخ باد ته مخامخ پريوتو.

له دې ستړيا وروسته دا دمه او دا يخ بادونه واه!

مزې مو وکړې!

د ملګري خبره مې خوله کې وروچه کړه: وږې خو نه يې؟

هغه راته په مړژواندې خندا وويل: د وږې له غوږه هر وخت د ډوډۍ

ټپا وي، ته ورېږي يي ټول عالم درته ورېږ ښکاري، زه له کومه ځايه غرېږم او ته راته همدا د لورېږ کيسې کوې.
ورته ومې ويل: ښه څه دا خبرې پرېږده!
هغه لاندې ناو کې څوک ښکاري مخ بره راخيژي، ته يي ګورې؟
ملګري مې په خندا راوکتل: کومه دې زه خو څوک نه ګورم...لکه چې سترګو دې هم کار پرېښود.
په ټوکه مې ورته وويل: اوس پوه شوم، له ما ته ډير ورېږ يي خو څوک حال وايي او څوک نه
ته ښه ځير شه!
په وريځو يي لاسونه کيښودل: هوووو..اوس راښکاره شو، دا خو راته کوم مجاهد ښکاري.
دواړو باقي په چوپه خوله لاندې ناو ځاره، څو شيبې وروسته زمونږه چوپتيا پيکا په اوږه، خوله خوله يو ځښور غازي د سلام په خوږو لفظونو ماته کړه

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته!

مورې د سلام ځواب په خوله، مات رامات ورپاڅیدو.

شرنګ شو.

راغلي ملګري پیکا د ونې ډډ ته تکیه کړه، له غاړې یې د پیکا د مرمیو، راتاوه کړې رسۍ ترینه رایله شوه، مورې ورسره لاس کړ، د پیکا له زنځیره مو راخلاس کړ.

او ورسره کلک ورغاړیوتو.

که څه هم په لمړي نظر مې ونه پیژانده، خو نوراني څیرې، او دنګې ځوانۍ یې بلا مزه راکړه.

ښه شیبه مې غیږ کې کلک نیولې و، هغه هم داسې خپلې سینې ته راجوخت کړې وم، لکه د ډیرې مودې پس ورکه یې چې موندلې وي، ساه یې بې واره تله راتله، شونډې یې موسکې شوې، په موسکا کې یې څیره ډیره اشنا شوه.

راته ویې ویل: ما په اسمان غوښتې الله په ځمکه راکړې، چې راغلې یم

نو له هر چاچې دې پوختنه کوم، نو راته وايي چې دې نه شې پیدا کولې، په خندا يي پسې خبرې وغځولې... ته خو پوره بدل شوې يي ماشاءالله، اوس ګمان نه کوم که پخواني یاران دې هم وپيژني.

ما هم ورته په ملا متیا ورغبرګه کړه: یاره ډېر خوږ راباندې لګیږي خووووو......

بیا يي چې وخندل او ځان يي راپيژانده، نو نوم مې ورته واخیسته، له مضبوطو مټو مې ونیوه، راپورته مې کړ، او یو ځل بیا ورغاړیوتم.

دا زما د یو ملګري کشرې ورور و، زه به چې کله ددوې ځای ته لاړم نو دده به همیشه سر په کتابونو ټیټ و، هغه وخت د پوهنتون محصل و، ورور به يي ویل: له فېسبوکونو او مبایلونو سره يي سخته ورانه ده، هره ورځ يي راسره د جمعې په لمانځه لانجه وي، دا هغه مهال و چې دده نرۍ ږیره راغلې وه د نورو وروڼو په څیر يي ږیره نه خریله، د سپورټ ډېر شوقي و، ښایسته باډي يي لرله، د پلاريي په ټولو زامنو کې په ده ډېر اعتماد و، د کور، موټر، دوکانونو، ټول واک له ده سره وو.

مشرانو وروڼو به يې په خندا ويل: ده بلا وهلې مو په پلار څه تورې کوډې کړي، هر څه دده په لاس کې دي، موږ اوس دده لاس ته ناست يو.

اوس مې چې دده په تن زړو جامو او په ګردونو خړو څڼو ته ليدل نو ځکه مي په لمړي نظر ونه پيژانده، ږيره يي هم ښه ګڼه شوې وه، څيره يي له پخوا لا خوږه شوې وه، په پښو يي زړې شليدلې څپلۍ وې، يو ځاې يي په خړه ټوټه تړلې وې، زما يي چې په څپليو نظر شو نو ده راته په خوږه موسکا وويل: دا لاندې خوړ کې وشکيده، بيا مې په ټوټه سره راټوله کړه، دې سره يې جيب ته لاس کړ، ډک موټې وريته کړي غنم يي راوويستل، موټې يي ماته په لپه کې راتش کړ.

د پلار، وروڼو، کورنۍ، سبقونو او نورو حال احوال مې ترې وپوښت؟

ويې ويل: دا مې پنځمه مياشت ده چې راغلې يم کور سره مې هيڅ رابطه نه شته، او رابطه ورسره ځکه نه کوم چې هغه ستا ملګري اوس ددې طاغوتي حکومت په وزارت داخله کې وظيفه اخيستې او هغه بل

کشرۍ یي هم ځان سره ګمراه کړې دې، او مشر خو تاته مالوم دې چې له پخوا نه د امریکایانو په مزدورۍ ویاړي، پلار مې هم د هغوې پیسو ته خوشاله دې، ما هم ورسره د الله لپاره هر څه پرېښي.

ملګري مې ورته وویل: یانې براء دې ورسره شروع کړې؟

په موسکه خوله یي وویل: هو

ورته ومې ویل: ښه پوهنتون څنګه شو؟

له پوهنتونه فارغ شوم، مشر ورور مې وظیفه هم راته پیدا کړې وه، شپاړس سوه ډالر یي راکول، بس نور مې دې کفري نظام کې زړه ترک چاوده، هلته طاغوت کې نور اوسیدل راته له برداشته بهر شول، ایسته مې پښې راسپکې کړې.

دلته کومه اداره کې یې که څنګه؟

نه، اداره کې نه یم، مشرانو راته وویل، خو ما ورته عرض وکړ: چې تر یو وخته کتیبه کې پاتې کیږم، بیا به کومې ادارې ته راشم.

ساعت ته یې وکتل د ځاې پته یي راڅخه واخیسته، د بیا لیدو د ژمنې

سره پاڅید ويي ویل: تشکیل مې دې لرې روان يم چې ناوخته نه شي. ما هم د بیا لیدو د شپینۍ وعدې په اخیستو سره پرېښود، ما چې ورته څو له خپلو پښو څپلۍ راویستلې، نو ملګرې مې ورته خپلې نوې څپلۍ مخې ته ایښې وې، د نه اخیستو ضد يې کاوه خو ملګرې مې ورته په خندا وویل: ته سنګر ته روان يې او مورې دفتر ته.

په خندا مو سره يو بل غیږ کې ونیول، دې روان شو، شاته مې ورپسې لیدل، تیرو وختونو ته يې بوتلم، بیرته راستون شوم، ددې ځای د خوارۍ ژوند په لمحو کې مې د زمرو زلمیو ایثار، مینې، ژوند او قربانیو ته فقط څو اوښکې تویې کړې.

له هغې وعدې درې میاشتې واوښتې خو هغه رانغې، تیره ورځ راته یوه ملګرې وویل:

هغه خو دا دوه میاشتې کیږي چې شهید شوې، تقبله الله.

## ایله یي خپلې دښمنۍ ته اوزګار کړو!

اسامه!

د پلار زوی یې که د مور؟

زه...د مول زوې یمه.

نو بیا دې د پلار لمن ولې هر وخت نیولې وي، هغه مور سره دې اوسه کنه؟

چې شیطانې وکم هغه مې وخي.

ورته مې وخندل: ښه نو شیطانې مه کوه کنه.

اسامه غلې شو، دغه وخت صهیب د چایو د ترموز له بوجه په یو اړخ کوږ راروان و، ترموز یي کېښود په منډه ووت، شیبه پس یي پیالې راوړې.

بهار استاد وخندل او راته ویې ویل: خبره سرچپه ده، اسامه ځان د مور زوی ګڼي خو زما له خوا نه خوځیږي او صهیب بیا وايي چې د پلار

زوې يم خو کار ټول مور ته کوي او د مور خوا نه پرېږدي.

اسامه د بهار استاد مشر زوې او صهيب يې کشرې زوې و.

صهيب بيا ډېر ښايسته، شين سترګې، ګلالې او هوښيار هلک و، په دې واره ځان يې زکاوت او هوښيارتيا ته لوې او واړه حيران و، او اسامه بيا دومره نه و، چې خبرې به يې کولې نو بندې بندې او شميرلې خبرې به يې کولې او د خبرو دغه انداز به يې لويو او وړو ته ډېر خوند ورکاوه او کله به چې ماسره هم مخ شو نو کوشش به مې کاوه چې د خوند لپاره يې وغږوم.

تازه يې ورور پيدا شوې و، دغه وخت لا استاد بهار زما له ژونده نه و خبر.

ايوبي به راته ويل چې هره شيبه دې يادوي او درپسې ژاړي، ما به ورته ويل: چې کله کلي ته درښکته شوم نو بيا به ورسره ميلاو شم ان شاءالله، څو مياشتې پس په پټه کلي ته لاړم.

اسامه کور ته رانغوت ماشومان يې په دې نيت مخې ته شول ګوندې ما

ونه ګوري.

ماشومانو ته مې وويل: پرېږده چې راشي دا ځوان دومره نه پوهېږي خو خيال ساتئ چې صهيب که وليدم نو هغه بيا ډېر هوښيار دې.

اسامه سره ماشومانو خبرې شروع کړې.

زرقاوي ورته وويل: اسامه ورور دې څنګه پيدا شو؟

اسامه په ډېر زور خبره شروع کړه: هغهغه خخخو ززما، پلال واولي پاکولې..چچې،چې ستلې شو، نو الله پاک ته يي سوال ووکه چې ماله زوې لاکه ايسته خبييب وشو.

(هغه خو زما پلار واوره پاکوله چې ستړې شو نو د الله نه يي سوال وکړ چې ماله زوې راکړه، ايسته خبيب پيدا شو)

د اسامه خبرو ته ټول کور وخندل، کور والا نه مې د استاد د بچو پوښتنه وکړه؟

ويل يي ټول ښه دي، خو تاسې پسې ټول زيات خفه دي.

ايوبي ته مي وويل: ورشه بهار استاد راوله!

هغه چې ورغلې و نو ورته ويلي يي و:
يو ډېر غټ زيرې او راز درته لرم خو يو به وارخطا کيږې نه، او بل به راز ځان سره خوندي ساتې.
نوره يي نو خبره نه وه ورښکاره کړې.
کوټه کې ناست و، زه پرې ورننوتم، په اول نظر يي ونه پيژاندم، چې کله مې ورسره خبرې وکړې نو استاد انتهايي وارخطا او هيجاني شو، راپورته شو راپورې ونښت او بيا نو داسې احساساتي حالات و چې په الفاظو کې ددې صحنې انځورول زما په وس کې نه شته.
څو شپې پس خپل ځاې ته لاړم، يوه ورځ چې مې له ډېر لېرې کلي ته راوکتل نو د ډېرون د څو ميزايلو له شور وروسته له څو کورونو دوړې پورته شوې، کورونه مې ټول وپېژندل، په ويشتل شويو کې يي يو د علي ورور کور و، علي ورور د دير ميدان اوسيدونکې و.
فکر يوړم چې اوس به په دغه ړانده او قصدي بمبار کې څومره ښځې او ماشومان شهيدان شوي وي؟

په همدې فکرونو کې وم د علي ورور واړه بچي حماس، وقاص او مریم مې سترګو سترګو ته کیدل کله به هم چې ورغلم ټولو به رامنډې کړې غېږ کې به راته کښیناستل په یو بل به یې زیري کول چې عزام چاچو راغې.

د علي ورور کور تازه دې کلي ته راغلې و، څه وخت مخکې یې چې بل کلي کې کور و نو لېرې په سفر وم خو د علي ورور مینې دده پوښتنې ته ورستون کړم، چې په حجره ورننوتم نو یو بل په عمر پوخ سړې په نکریزو سره بېره ناست و، له تاوده روغبړه پس علي ورور ناست ملګري ته اشاره وکړه: تا یې د لیدو ډېر ارمان کاوه قاري صاحب جنتي دادې.

جنتي قاري صاحب کورنۍ هم ټوله د ګورګورۍ بمبار کې شهیدان شوې و او اکثره ملګرو به ویل چې جنتي قاري صاحب ترې څادر په اوږه کړ او تش لاس مخ پورته روان شو.

لا تر دې دمه مې نه ولیدلې، نن یې په لیدو زیات خوشاله شوم، د کورنۍ

د شهادت مبارکي مې ورکړه، ډېر حوصله کې و، او په پوره وياړ يي راته وويل: ايله اوزګار شولو.
اوس به نو بل څه ته فکر نه وي، اوس يي خپلې دښمنۍ ته فارغ کړو،

ددوې خبرو ماته مصطفې مولانه رایاد کړ، ورته ومې ویل: کله چې په مامند کې د مصطفې مولوي صاحب د بچو اینګیندو، لوڼو، زامنو او ښځو په شمول د کورنۍ څلورویشت کسه په بمبار کې شهیدان شول نو زه په دې تمه څنګ ته ورغلم چې نوموړې به سخت پریشانه وي ژاړي به، زه به ورته ډاډ او تسلي هم ورکړم او د راډیو لپاره به ورسره مرکه هم وکړم، خو چې ورغلم نو تاسې بارو وکړئ د نوموړي په څيره مې هيڅ ډول د غم اثرات ونه کتل، په خوشاله ټنده راسره میلاو شو او راته ويې ویل: یاره دې کافرو ایله خپلې دښمنۍ ته اوزګار کړو، مخکې به مو ایله په میا شت کې درې څلور تورې اوره او نوره سودا پیدا کوله اوس نو یو سر په هر سنګر یم.

د ملګري په سلام د خیالونو له دنیا راووتم.

ملګرې له رابطې تازه راستون شوې و، په منډه مې پوښتنه ترې وکړه:

وروره ژر وایه څومره کسان شهیدان دي.

ملګري په ژړغوني غږ راته وویل: وروره د بهار استاد، عیسې مولوي

صاحب او علي ورور پوره کورنۍ په دې وحشت کې شهیدان شوي.

سخت ودردیدم، د استاد او علي ورور هر یو ماشوم مې بیل بیل نیغ مخ

ته ودریده!

آه....

څه ګلالي ماشومان و!

کله چې کلي ته کښته شوې وم نو بهار استاد او زه د یو ملګري څنګ

ته پټ روان شولو، بهار له ما مخکې لاړ او زه ورپسې شیبه پس شاته

پټ ورروان شوم، د بهار د کور په مخه چې تیریدم نو د بهار دریم زوئ

صدیق ولاړ و، په سترګو يي موټې ایښې و ژړل يي او همدا نارې يي

وهلې: واه پلاله واه پلاله.

په سر مې لاس ورکېښود پټ مخ وم: هله شابه کور ته ننوزه، پلار دې اوس راځي شاباس څه هله.

ماښوم روان شو، د کور په وره ورننوت.

دغې هرې صحنې مې په ذهن سکوندارې لګولې.

استاد ته چې ورورسېدم نو راته وېې ویل: وروره کور والا مې هم هر وخت تا یادوي چې دا خو زموږ مور هم وه او پلار هم، سخته درپسې خفه ده که خوښه دې وي خبره یې کړم

ما ورته وویل: سمه ده بس زموږ خور ده خو ګوره ښځې راز کې کمزورې وي هسې نه له خوشالۍ ترې خبره خوره شي؟

ویل یې: نه داسې به نه کېږي

څو ورځې پس یې راته ویل: وروره کور والا مې درته سختې دعاګانې کوي انتهایي خوشاله شوه، ویل یې کاش ! دومره څه مو لرلې چې دوی مو ورته برابره کړې وې.

د استاد د بې وسې دې خبرې زما زړه اره اره کړ.

رښتیا هم څه مجاهده او مومنه خور وه، اوس د ټولو بچو سره یو ځاې د صلیب په اور کباب شوه.
ملګري مې راغږ کړ: وروره بس دومره غمونه مه کوه، د انتقام په اړه یي فکر په کار دې.
د ملګري په خبرو یو ځل بیا د تصوراتو له سمندره راووتم.
ورته ومې ویل: کښته کیږو ورځو هر څه له نیږدې ګورو، استاد به په څه حال کې وي علي ورور ګورو زما په لیدو به یي غم راکم شي تر دا مهاله لا علي ورور له ما خبر نه و.
راکیوتو، د علي ورور د ړنګ کور په څنګ تیر شولو، د سویو جامو او برستنو ټوټو بره په ونو کې ټالی وهلې، د کور لوښي په پرچو سوري سوري و.
لږ مخکې چې لاړو په بهار مې سترګې ولګیدې، لا همغسې پیپ ته ولاړ و، او بوشکې یي ډکولې، ددې حالاتو لیدو تاب مې رانه وړ، لاړ مې ترې چپه کړه، چې ورسیدو نو ملګري راته وویل: د بهار استاد ماشومان

هم علي ورور کره په همدغه ساعت لاړل، چې ځنګه دوې ورسیدل نو کومې کوټه کې چې ښځې او ماشومان راټول و همغه کوټه یي وویشته، اوس بهار خالي کور ته وځي او ننوځي، اوس هم په خپل کاله کې ویده کیږي او اوس هم د کور په هرکونج او کالو کې د خپلو لمبه شویو بچو تصویرونه ګوري.

ملګري ته مې وویل: علي ورور راوله.

شیبه پس علي ورور راغې په ملا یي لاس ایښې و، زما په لیدو یي چغې کړې، سبحان االله سبحان الله. ماته له راغاړیوتلو وړاندې په خړه ځمکه په سجده پریوت، ښه شیبه یي د سلګو شور اوریدل کیده

چې راپورته شو همداسې مې غیږ کې راپریوته بار بار یي ښکلولم، او همدا خبره به یي کوله بس غم مې ختم شو، ستا په لیدو مې غم ورک شو، علي ورور ډېر په اطمنان بیرته لاړ.

ماذیګر امید راوخوت او زنانه و ته یي وویل: چاې واچوئ

ورته ومې ویل: حجره کې څوک دي؟

ویل یي: عیسې مولوي صاحب، بهار استاد، علي ورور، مسلم کاکا، او فلاح الدین کاکا، چاې غواړي

زړه مې وچ درد وکړ، ټول هغه ملګري راټول شوي و چې د ټولو پوره کورنۍ شهیداني شوې وې او دوې ترې پاتې و.

امید ته مې وویل: بل څوک ورسره نشته؟ ټول همدوې دي؟

امید ویل: نه انجنیر خالد هم اوس راغی.

ورته ومې ویل: ښه، څنګه ټول یوځاې ته راټول شوي؟

امید په پوره ویاړ وویل: د فلاح الدین کاکا نوبت راورسید هغه لکه چې استشهادي ته ځي، هغه رخصتوي.

ډیر مې زړه وشو چې ورکوز شم او ټولو ته کلک ورغاړیوځم، خو د مشرانو له خوا په ملاقاتونو کلک بندیز و، زړه کې مې ویل:

عجیبه ده، د تره زوی مې استشهادي ته ځي باقي ژوند کې به یي ونه ګورم خو زما له ژونده لا خبر نه دې او زه ورسره ملاویدلې نه شم؟

امید نه مې پوښتنه وکړه: دوې خپلو کې یو بل ته سره څه وایي؟

امید په خندا شو: بس هر یو همدا وایي

ایله یي خپلې دښمنۍ ته اوزګار کړه.

## د امریکا پروژه!

وریځ وه مبایل یې غوږ ته نیولې و، ډېر په غصه لګیا و، لاسونه یې تونـد تونـد خوځول، یوه شیبه ورته ولاړ وم، زړه مې و چې روان شم خو د لاس په اشاره یې ودرولم او خبرې یې په غصه بې لـه الله پـه آمـاني ختمـې کړې.

لاندې لارې ته راکوز شو ټنډه یې تروه وه، ځان سره په خبرو و.

له روغبړه پس مې ترې په خندا وپوښتل: وروره څنګه د مرچو په اندې ناست یې؟

په خوله تندي یې د زاړه رومال پیڅکه راښکله: بـس جـاهلانو سـره مـو سر ده الله دې هدایت ورته وکړي.

څوک و؟ څه یې ویل؟

مشر ورور مې دې مفته کې ځان ګنهګاروي د امریکایي طیارو د سیوري لاندې په امریکایی وسله سنبال په امریکایي زغره والو ټانګونو کې زموږ جنګ ته راغلي افغاني کماندویان شهیدان بولي او موږ ته د امریکا پروژه وایي!

په خندا مې ورغبرګه کړه: ورور دې څه کار کوي؟

په غصه یې وویل: نانوایي کوي، نوره کومه رسمي وظیفه هم نه لري فقط په ښار کې دوکان لري او دا مرتدین ترې ډوډۍ وړي.

ورته ومې ویل: وروره داسې خلکو سره بیخي رابطه مه ساته ګنهګاریږې.

په مړاوې لهجه یې ځواب راکړ: مړه ماویل ګوندې الله به هدایت ورته وکړي، که چیرته له دغه فکر څخه واوړي او الله یې له جهنم نه وساتي.

دې خبرې سره يې له لاسه ونيولم: ځه چې وخيژو، يوه پياله چاى به هم وڅښو او دمه به دې هم جوړه شي.

ما ورته وويل: آباد اوسې قاري صاحب، ځـم چـې تيـاره فضـا برابـره ده، هسې نه بيا ډرونونه راپيدا شي، که ژونـد و بيـا بـه سـره يـوه شـپه غـورې وکړو ان شاء الله.

ترينه روان شوم.

ډير وخت پس هغه تيره ورځ يې بې سته ځنـګ تـه ورغلـم، ډيـر راتـه خوشاله شو.

روژه ماتې نه مخکې خوار ډيرې تودې منـدې رامنـډې ووهلـې، زه پوهـه شوم چې د روژه ماتې د را برابريدو په کوشش کې دې.

کله چې ماښـام دسـترخوان غـوړاوه او د تبـۍ تـاوده سـوکړکان يـې پـرې خورول نو په خواره خوله يې راته وويل: وروره بـس خفـه کيـږې بـه نـه،

ډېر کوشش مې وکړ، له یوې خوا لارې بندې دي او بل پلو دې ډرونونو سم بد حال جوړ کړې فقط چې د خره والا ګوري نو ګوزار پرې کوي بس هیڅ هم نه پیدا کیږي.

شیبه پس یې زوی سابه او غټې سپینې خوټولې بی غوړو وریجې په یو زاړه پټنوس کی راخستې وې، د دسترخوان خواته مرور کیناست.

د خپل بې وسه مهاجر ورور دې حالاتو سخت وردردولم خو بیا مې هم غاړه تازه کړه: وروره د الله شکر وباسه چې دلته داشیان پیدا کیږي زموږ طرف ته خو هیڅ هم نه شته، جوار مو خوټول هغه هم خلاص دي.

پشنمې چې سړو سوکړکانو او تراخه چایو ته کیناستو نو مبایل ته یی پیغام راغي د مبایل شیشې ته په کتو یی په تروه ټنډه خولې راماتې شوې په غصه یی مبایل په دوشک وغورځاوه.

ترې ومې پوښتل: قاري صاحب! خیر خو به وي ان شاء الله؟

د زړه په زور يې وخندل همغه جاهل ورور مې دی، مور مې ورسره ده مجبور یو د هغې له کبله ورسره کله کله رابطه کوم

لاس یی راوړېد کړ: هن ته یی خپله ولوله!

چې څه يې لیکلي؟

مبایل مې ترې واخیست، ورور يې لیکلي و:

مور درته سلام کې او وايی ته ددې لوچک نه پوښتنه وکړه چې د خوراک څه يې شته که نه، ما خو ورته وویل چې دوی ته امریکا پوره اکمال کوي اوس به یې هم په دسترخان ډېبي بند کوچ، ملایي شات او نور قسما قسم خوراکونه پراته وي خو مور یی نه مني، ته خپله ډاډ ورکړه.

نیمګړې پیاله:

نن څو ځله د کنډو سرته ختلي و، په آخري ځل چې راکښته شو نو په مروره بڼه یې له کونډې موره وپوښتل: کومه ده أبو حمزه ماما خو نن هم رانغی؟!

مور یې په ټنډه ښکل کړ: زویه الله مهربانه ده نن به راشي، پرون فضا خرابه وه ډرونونه ډېر وو چېرته به ایسار شوی وي.

لږ شېبه پس شاهد په انګړ کې په لوبو شو، ماذیګر و چې دروازه وټکېده، شاهد په منډه ورووت، أبو حمزه ماما وو!

لګیا وو له خره یې ګنډه خلاصوله!!

چې شاهد یې وکوت نو ورته ویې ویل: بچو خانه سودا مې درته راوړه.

شاهد له خوشحالۍ په ټوپونو شو، په یوه بوجۍ کې په دوه منه اوړو یې زور ونه رسېده خو په بله بوجۍ کې لږه سودا وه هغه ګنډه یې شاته واچوله، مور یې ترې د انګړ منځ کې ګنډه واخیسته.

د شاهد صبر نه کېده مور ته یې په خوشحالي وویل: ته یې خلاصه کړه چې څه شی یې راوړي دي؟

د مور سترګې لمدې شوې: زوی جانه ستا دپاره خو یې څه شی نه دي راوړي بس د کور سودا ده.

چې ګنډه یې خلاصه کړه نو پاکټ غوړي، دوه کیلو لوبیا، دوه کیلو سمتری، نیم کیلو شین چای، د تېلو ډبلی، مالګه او نور ټکه پوکه پکې پراته وو.

د سودا په لیدو د شاهد ټنډه وغوړېده، د مور له غاړې یې لاسونه تاو کړل: بېګا ته خو اېشولي جوار نه خورم، نن شپه ډوډۍ او لوبیا پاخه که...

مور یې ورته په خواره خوله وویل: زویه اوس خو ناوخته ده که خېر وو سهار ته به یې درته پاخه کړم.

شاهد بیا هم ضد کاوه خو چې مور یې ورته په اوښلنو سترګو وویل: زویه ګوزاره به کوو، ګوره ته خو یتیم یې...!

شاهد نور غلی شو څه یې ونه ویل.

شاهد چې ماښام اېشولي جوار وخوړل نو مور یې ورته وویل: زویه که ژوند و سهار به درته غوړه پراټه هم پخه کړم، شاهد ته نو بیا تر نیمې شپې له خوشحالي خوب نه ورتلو.

او ولې به خوشحاله نه و چې له تېرو لسو ورځو یې فقط اېشولي جوار خوړلي و، نن یې کور ته اوره او غوړي راغلي وو.

سهار شو خو شاهد د مور د ډېر ټینګار باوجود هم له خوبه نه راویښېده ځکه بېګا تر ناوخته ویښ و، آخر یې مور ورته وویل:

زویه د سهار جمع خو درنه لاړه، استاد به دې بیا درته په غصه وي، شابه پاځه چې لمونځ قضاء کیږي.

شاهد سترګې مښلی را اوچت شو او له موره یې وپوښتل: ابۍ پراټه او چای دې پوخ کړی؟

مور یې ورته وویل: هو زویه هر څه درنه ساره شول، لمونځ وکړه بیا به چای وڅښې!

شاهد په منډه پاڅېد، څو چې یې اودس او لمونځ کاوه نو مور یې ورته په زاړه دسترخوان د شنو چایو ډکه کونډه داره پیاله، سره غوړه ډوډۍ او په یو زاړه قاب کې څو کلکې سمتری ایښې وې.

شاهد چې د لمانځه فارغ شو راغی او ړوند کوڼ یې د غوړې ډوډۍ په خوړلو پیل وکړ.

په څو مړیو کې یې ډوډۍ نیمه وخوړه، د چایو پیاله به یې هم نیمه څښلې وه چې د کور دروازه یې وټکېده، د مدرسې ملګرو حمزه او راش یې ورته نارې کړې.

شاهده وا شاهده....

استاد درته سم په غصه ده وایي زر راشه...

شاهد چې کلکه سمتره او سړه ډوډۍ خوله کې اړوله را اړوله پیاله په لاس ودرېد او نیمه څښل شوې پیاله یې په کړکۍ کې کېښوده، له پاسه یې پرې نیمه خوړل شوې ډوډۍ ورخوره کړه او بیا یې له پاسه پرې په موټي کې نیولې او خوَله شوې سمتره ورواچولې، قرآن کریم یې راواخیست چې له کوره وتلو نو مور ته یې په بنده بنده ژبه وویل:

ګوره زما چای ته څوک ګوتې یونسي چې بېرته راغلم بیا یې څکم.

مور یې ورته له درده په ډکه لهجه وویل: زویه ته چې راځې له چایو نه به دې اوبه جوړې وي، که راغلې په خیر تازه چای به درته واچوم.

شاهد په مړاوې بڼه ورغبرګه کړه: نه، ته راته بیا نور نه پخوې، بیا به راته وایې چې ته خو یتیم یې ګوزاره کوه.

د شاهد مور غریو ونیوه، په ډېره سخته یې اوښکې د سترګو په مردکو کې راتم کړې خو چې شاهد له لویې دروازې ووت نو دې هم ښه زړه تش کړ، هغه وخت وریاد شو کله چې د شاهد پلار ژوندی و او له هجرته وړاندې به یې شاهد په ډول ډول خوراکونو او مېوو کې پټ ساته اوس یې چې د بې وسه یتیم زوی دا له درده ډکې وړې خبرې واورېدلې نو تر ډېره یې سلګۍ نه تم کېدې.

آخر هم ولاړه شوه او په کوم کار بوخته شوه، لږ ځنډ پس یې په هوا کې د غټې بې باون طیارې تریخ شور تر غوږه شو، په انګړ کې ودرېده په وارخطایي یې ټیکری په سر سم کړ او لاسونه یې لپه کړل:

ای ربه! په خولې کې مې خیر واچوه، ای الله د مجاهدینو وروڼو مې حفاظت وکړه.

لا یې د دعا لفظونه په خوله وو چې د ځو زوروړو چاودنو درنو غرېونو، هوا او شور په انګړ کې راوغورځوله، ښه شېبه پس چې راپورته شوه نو ټول انګړ یې لوګیو او دوړو پټ کړی و، فکر یې وکړ ګوندې ددوی د ګاونډې کور یې وویشت خو چې دوړه کېناسته نو په کوڅه کې د خلکو چیغې او آوازونه واورېدل او لږ وروسته یې دا غږونه غوږونو ته راغبرګ شول چې:

هله ځان ورورسوئ مدرسه یې بمبار کړه.

د شاهد مور نوره په ځان پوهه نشوه، څادري یې په سر کړه او مخ په مدرسه یې منډې کړې، ګڼو ښځو او ماشومانو منډې وهلې.

د شاهد مور چې ورسېده نو د مدرسې په ځای اوس د خاورو له ډېري لوګي پورته کېدل، کلیوال د ماشومانو د راویستلو پسې د ګټو، لوټو،

خاورو او لرګیو په لېري کولو بوخت و، د شاهد مور په لړزېدلو لاسونو د څو سوځېدلو قرآنونو نسخې راپورته کړې، تر ماذیګره د شاهد په شمول د اوه څلوېښت ماشومانو ټوټه جسدونه له خاورو راووتل، په وژل شوو کې د خراسان د پخواني والي حافظ سعید خان تقبله الله دوه کوچني زامن هم شامل و، د شپې مو له راډیوګانو واورېدل چې د پنټاګان په اعلامیه کې راغلي چې په یو هوایي برید کې د داعش د ځانمرګو بریدګرو یو مرکز په نښه شوی او پنځوس کسه برید کوونکي یې وژلي دي.

د شاهد د مور تر نیمې شپې سترګې ورنغلې، پورته شوه له کړکۍ نه د سپوږمۍ رڼا کوټې ته راپرېوتې وه، د کړکۍ خواته ودریده چې کتل یې د شاهد د چایو په پیاله اوس دوړې نه وه او له چایو نیمه پیاله له خړو خاورو ډکه وه.

## شکېدلي کمیس!

پنډه واوره پرته وه، یو ملګري ویل: یاره که بیګا ته هم ووریده نو کیدای شي لارې بندې کړي.

سیفور اکا ورته وویل: وروره ښه ده ستاسې کلي کې خو جوار پیدا کیږي، د نورو کلیو مهاجرینو ته دعا کوه چې که لارې بندې شوې نو سخت به په تکلیف کې شي.

هاشم ترې وپوښتل: سیفور اکا څنګه څه شې دې پیدا کړل که نه؟

سیفور اکا په نکریزو سره کړې ږیره لاس راکش کړ: هو الحمد الله درې منه جوار خو مې پیدا کړل خو چې دا لاندې ژرنده ورانه ده که جوړه؟ زموږ د کلي هغه خو یې تیره ورځ په کروزونو ورانه کړه.

هاشم ورته وویل: هو الحمد الله جوړه ده.

ماښام چې له کوټې راووتلم نو سخته لړه وه، سترګه په سترګه نه ښکاریده، ساړه له حده زیات و، بیرته مې په کوټه ورمنډه کړه.

سیفور اکا پوښتنه وکړه: څنګه واوره خو به نه وي شروع؟

جواب می ورکړ: نه، خو د اورښت امکان یې شته.

سهار چی راپاڅیدو نو دومره واوره اوریدلې وه چې بهر د وتلو شان نه و، چې لمونځونه مو وکړل نو سیفور اکا هاشم ته مخ کړ: وراره که چای لړ وختي راوړې نو ښه به شي زه بیا ژرندې ته دا دانې وړم کـه د وختـه اوړه شي کور کې څه نه و!

هاشم ورته وویل: سیفور اکا دومره وختي خو اوبه هم کنګل وي ژرنـده به چرته وچلیږي چې لمر راوخاته نو بیـا بـه زه هـم درسـره کیـوزم، زمـا جوار هم ژرنده کې پراته دي زه به خپل جـوار راوړم او تـه بـه خپـل هغـه وړه کړې.

سیفور اکا چپ شو، بسترو ته ډډه شو.

زه همداسې خوب وړی وم، ناوخته و، چې هاشم چایو تـه راجـګ کـړم، چې راکیناستم سیفور اکا لا هم په خپل ځای کې په خیـالونو کـی ډوب ناست و، چای مو وڅښلې، هاشم پوښتنه تري وکړه: سـیفور اکـا د کلـي ژوند مې دې رایاد شو، څه غوږ به ګرځيدې، دوکانونه، جایـداد او ټیکټـر دې ټول لکه چې ورونو ته پاتې شول؟

سیفور اکا خوږه موسکا وکړه: ددې ځـای د ژونـد لـه یـوې لحظـې دې داسـې د طـاغوت سـل هسـتیٔ زنـدګیٔ ځـار شـي، هـر څـه و، وراره! خـو سکون په کې نه و.

هاشم د سیفور اکا کلیوال و، تر ډیره یـې د سـیفور اکـا د کلـي د شـتمن ژوند کیسې وکـړې، د ورځـې لـس بجـې شـوې سـیفور اکـا ورغـږ کـړ: هاشمه وراره هغه زما لور ته هم درسره غږ کړه، چې ځو په خیر، د ژمـې یو پوټې ورځې دي چی بله شپه مو رانه شي.

هاشم جګ شو لږه شیبه پس تقریبا لس کلنه ګلالۍ ماشومه یې تر شا حجرې ته راننوته، زاړه پلاستیکي سورې بوټان یې په پښو و، خړ مښلې پټو یې ځای ځای سورې و.

ماشومې ته مې لاس ونیوه، د یخو ګوتو څوکې لاس کې راکړې.

پوښتنه مې ترې وکړه: نوم دې څه دې؟

د ټیکري پیڅکه یې خوله کې ونیوله، په موسکه خوله یې وویل: فاطمه.

سیفور اکا ته مې مخ کړ: اکا په دې ماشومه دې څه کول چې دې واورو او اورېدو لارو کې دې ځان پسې کړې؟

موسک شو: یاره نظام صاحب دا خو مې په دې خاطر راروانه کړه مال که چرته لاره کې ډرونونو رایسار کړم نو که دا راسره وګوري او زړه یې راباندې وسوځي چې څه سپین ږیری سړی دې او ماشومه ورسره ده او له ویشتلو مې تیر شي.

غوښتل مې چې د تیرې ورځې له هغه وحشته یې خبر کړم چې په یوه بله منطقه کې یې اوبو پسې روانې درې ګلالې کوچنیانې له ډرونه ویشتلې وې، خو بیرته چوپ شوم ما ویل فضا برابره ده ویرول یې ښه نه دي، پریږده چې کار خلاص کړي او په وخت ځان خپل کور ته ورسوي.

سیفور اکا د جوارو پیوندي بوجۍ شاته واچوله او ماشومه لور یې له لاسه ونیوله مخ ښکته کیوت.

قضا ماسپښین چې هاشم راغې د سیفور اکا پوښتنه مې ترې وکړه.

ویل یې: هغه سره مې ژرنده وکړه او لاړ په خیر!

هاشم خبرې وغځولې:

وروره! د ژرندې خوا او شا مو د لیوانو پلونه ولیدل، ما خو ویل چې ګیدړان یا سپي به وي خو سیفور اکا ویل نه پنجې یې د لیوانو دي او ویل یې دغه واورو کې لیوان وږي کیږي او لاندې راکیوزي.

موږ د ماذیګر د لمانځه تابیا کوله چې ډرونونه راپیدا شول، لږ چې وګرځیدل نو له پورې کنډوه د دوه پرلاپسې چاودنو غږونه راغلل.

هاشم په منډه راننوت: یاره ګوزارونه یې وکړل والله اعلم چې څوک به یې ویشتلې وي، سیفور اکا خو به هم اوس دې کنډو ته رسیدلې و.

نور نو ماښام شو، تر ماښامه د ډرون د ګوزارونو څه درک ونه لګیده چې څوک به یې په نښه کړی وي سهار لږې وي هاشم او ورسره درې ځوانان کنډو ته پورته شول غرمه وه چې راستانه شول.

ترینه ومې پوښتل: څوک یې ویشتلي و، خښ مو کړل؟

زما د ځواب په ځای په لاس کې نیولې ګنډه خلاصه کړه د فاطمې په خړ شلیدلي او سوځیدلي پټوکې یې په وینو سور شلیدلی کمیس پروت و او ورسره یو موټی د سیفور اکا د سرې ږیرې وینښته هم ایښي وو،

هاشم په غریو نیولي غږ وویل: نور څه خو مو پیدا نه کړل خو د ډرون د پرچو سره یو ځای په وینو سرو واورو کې د لیوانو پلونو سره دا وینښته او شلیدلې کمیس مو وموند.